# کندهار



په احمدشاهی واټ کی د کندهار د مرستون د ودانیو دریمه برخه

# کاکل

نمرا مور دی د ختن د ملک هوسی ده  چې د مشکو بوی دی درومی له کاکلو
«خوشال خټک»

---

د هغو غرو ئیو شو نه دی هوسکی مه شه
چی پسې ګل وی رقیب نجتی پسر کاکلو
«رشاد»

---

د کاکل د اعتکاف و پښلمی ته  کاندی غسل په نودو اوښکو هر شام شم
«بریالی»

---

د ښکر و شرنګ وای، آواز د چنګ وای
خاطر وای جمع ، پرېشان کاکل وای
«ربدی»

---

ګوره نېر و ښتي ظاهر د سرو ګلو نو  خاره دی سراسر و کسره کاکله
«شفیق»

---

چی پرمخ کاکل پرېشان کړی هغه نه ئي
چی خوږولی نور ښامار یم هغه زه یم
«خواجه»

---

نوردی اوربل نوردی کاکل عاشقان ټول کی ارمان
ښه او نګین دی پرسینه پرسر دی شال ابښیدی
«عبدالرحمان»

---

نور دی کاکل پرنندی خپور سو عجب زیب کوی دا
صبرو آرام را څخه یوړه ستا چشمان دلبره
«ملاعبدالسلام د کرز»

---

یا ستا سیاه کاکل دی پسا بوی د مشکو نېزه
یا ستا زغ د بلبل دی یا د طوطیانو ږېزه
«محمدعیسی»

---

نور کاکل او ښابستي مسلالی ستر ګی
سیال ئې نسته ان په ټوله هندوبار کی
«ویران»

---

# کندهار

میاشتنی جېرونه

ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

مسئول چلوونکی:

ا، م «کرزی»

اداره: د شهیدانو واټ

د دولتی مطبعی څنګ ته



د ۱۳۴۱ لمریز کال د [سرطان] میاشت
د ۱۹۶۲ میلادی کال د [جولایی] «
د دریم کال څلورمه ګڼه
پرله‌پسې ګڼه [۳۸]

کالنۍ «بیه»
په کندهار کښی [۳۸] افغانۍ
په‌دننه مملکت کښی [۳۲] «
په دباندنیو هیوادو کی یوپالر

## ددې ګڼې مضامین

# خوشبختي څه شی ده ؟

د پیدایښت له اوومړیه ورځې څخه بیا تر اوسه پورې ټول انسانان په دې فکر اخته دي چې خوشبختۍ ته لار پیدا کړي، ټل د سعادت د وسایلو د راغونډولو دپاره پر له پسې کوښښ او زیار باسي لېکن څکاره نه سو چې سعادت څه شی دی ؟

ځانې را تللو نسلو نه دي هم د خوشبختۍ د پیدا کېدو دپاره د فکر تیلیان وځغلوي او څه دي په لاس ور نه شی .

تر اوسه پورې د نړۍ ټول فیلسوفان، حکیمان شاعران، مخترعین او پوهان د خوشبختۍ په شاؤخوا کې ږغېدلي او پېله دې چې د خوشبختۍ مسلمه نتیجه لاس ته راولي له دنیا څخه تللي دي .

څوک خوشبختي په ثروت او پیدائش کې بسولي ځینې شهرت او نوم در اودلو ته خوشبختي وائي څوک دا خوشبختي بولي چې جاه او مقام ته ورسیږي او پر نورو حکم وچلوي، ځینې د شهوتونو او نفسي خواهشاتو و آرامولو ته خوشبختي وائي .

د فکر او استدلال څښتنانو په دې موضوع کې څه زوږ تحقیقات وکړل او د بشر په افسیاتو کې څه په غور وږغېدل؛ تر د پرو څېړنو او پلټنو وروسته ئې د بشر خوشبختي په لاندې شیانو کې وبلله چې پر هغو باندې هم په یوه اتفاق باته نه شول .

د یونان ځینو فلاسفه ؤ خوشبختي په علم کې دننه وبلله او ځینو اخلاقي فضیلت خوشبختي وګڼله ځینې د مادي خوندو حاصلېدو ته ولاړل او ځینو د نفسي خواهشاتو پر پښوول او د نیوي چارې ترك وهل سعادت وباله؛ د مشائینو د ډلې مشر او د لېسي استاد ثروت، اخلاقي فضیلت، ښایست، د مزاج اعتدال او د کورنۍ نجابت د خوشبختۍ ارکان وبلل؛ هر چا هر څه وویل خو تر اوسه د خوشبختۍ غوڅه خلاصه نه سوه .

پوهه نه سولو چې د څه دپاره د دنیا ته راغلو، د ژوند هدف او غایه څه شی ده، خوشبختي چیرې ده او اخلاقي فضیلتونه کوم دي؟ هر څه چې پر موږ مجهول وه هغه ټول مو په خپل خیال کې پوهه لار پیدا کړله او علم مو وباله بیا هم حقیقت ته و نه رسېدلو، که چیرې حقیقت ته رسېدلي وای او بیا به دومره اختلافونه؛ شخړې، ظلمونه او بدبختۍ نه وای او بشریت به د خوږې ورور ګلوي، پاکې مینې او عدالت په غېږ کې ارام پروت وای، او د خپلو فطري نوامیسو سره سم به یې د ژوند کاروان مخ د تکامل پر خوا روان وای نه به بادار او غلام وای، نه به سرمایه داري او مزدور وای، نه به اشرافیت او خواري وای، نه به د فکري او اخلاقي فضیلت خبره مېنځ ته راتله ، هر څه به د توازن وای، اساسي خبره دا ده چې موږ انسانان څرنګه چې ځانې تر اوسه نه دي پېژندلي او نه به دا معرفت د بشر د کورنۍ په نصیب سي ځکه هیڅ شی پر خپل ذات او ماهیت باندې علم نلري

او نه د علم مدارك پېژندلای شي .
کله چې انسان په سترګو څه وليدل او يا ئې محسوس کړل نو ددې محسوساتو او مشاهداتو په اساس د دماغ په حجرو کې يو تصور پيدا شي کله چې دا تصور مرتب او منظم شي نو هغه ته دي دعلم نوم ور کښېږدی او دا فکری فضيلت و بولی تصور په خپل ذات او ماهيت کې ډېره يوه خلاقه ماده ده چې په يوه آن کې هر څه جوړولای شي او ژر ئې بېرته رنګولای شي کله انسان د پادشاهۍ پر تخت کښېنوی او کله ئې د دوهي ملنګ کړي .

به انديښنو مې ځان باچا کی
سر مې را بورته کی ملنګ د دوهي ومه

زموږ ډېر علمونه د تصوراتو محصول او ډېر اعمال مو د تصوراتو مخلوق او ډېری آرزوګانی مو د تصوراتو مولود دي ، کله چې انسان د خپلو تصوراتو سره ملګری شي نو هم رنګين باغونه جوړوی او هم ښايسته ماڼۍ د هغې حقيقي آرزو څخه چې د واقعيت په جهان کې محروم شي هغه ته ئې د ځان دپاره سازوی لکه کوچنوټی هلك چې د سيند پر غاړه کله د شګو دانې جوړوی او بيائې ړنګوی ، انسان کله چې د تصور په دنيا کې ښه شيونه غوره کړل نو هغه بيا د واقعيت په دنيا کې هم غواړی او کله چېری لاس ته ورنشي نو ځان بدبخته او د خوشبختۍ څخه محروم بولی .
شاعران چې د تصور د دنيا صالح زامن او پياوړي مبلغين دي هر کله ئې د خپلې دنيا د ښايست او ښکلا تبليغ کړی او خپل خيالی تصورات ئې په رنګينو الفاظو کې د جهان و خلکو ته وړاندې کړ بدی چې د دوی د آثارو مطالعه هم ترښه ځايه بشر بدبخته کړی او د سمې لاری څخه ئې کوږ کړی دی .
انسان طبعاً د زلميتوب په لومړيو وختو کې د شعر او شاعری سره مينه پيدا کوی او د شعر په څنو کې د تصورو آسمانته خيژی او له دې دنيا څخه خيالی آرزوګانی له ځانه سره په ارمغان راوړی چې دژوندانه ترورو ستيو شيبو پورې هغه بلټی او د پيدا کېدلو په لار کې ئې سرګردانه او پرېشانه وی .
که موږ د تصوراتو له دنيا څخه را کښته شو او د شعر او شاعرۍ رنګينو او خوږو الفاظ او مفاهيم له خپله دماغه و باسو محيطی تلقينات پرېږدو او د واقعيت په جهان کې څرنګه چې يو څه فکر وکړو بيا به نو انسانی سعادت څه شی وبولو ، دلته بيا خبره تکراروم چې د هرچا بيا جلا فکر او نظريه ده خو زما په فکر او منطق سره دا څو شيونه نسبتاً د بشر سعادت بشپړ کولای شي لکه اقتصادی مساوات ، اخلاقی فضيلت ؛ اجتماعی عدالت ، خو تر هر څه د مخه د بشری سعادت د رسېدو دپاره اقتصادی مساوات ډېر ضرور او خورا لازمی شی دی ؛ ترڅو چې په جهان کې ددې مهم عنصر ارکان بشپړ تعميم نه شي نه انسان من حيث الفرد ، نه بشری ټولنی د سعادت مخه ليدلای شي .
ځکه سعادت او د زړه داد ترټولو د مخه د مادی شيو تر به تکميل کې پروت دی کله چې مادی وسايل د ټولو انسانانو د ګټې په محل کې مساويانه شانته واقع نه شي او د جامعې د افرادو له منځه افراط او تفريط ليری نه شي ترهغو نه

« نور د پښتنی په دريم مخ کی »

زموږ ژبه

ښاغلی عبدالحی حبیبي

# په پښتو ادب کې کتنې او څېړنې

## خوشحالخان د ایډیلزم او ریلزم پر پېچومې
## آیا د خوشحالخان هنر د هنر لپاره وو که د ژوند لپاره ؟

دآیډیلزم یعنې اصالت تصور او خیالیت رېښې د انسانانو په شاعرۍ کې ډېرې قدیمې دي، هر کله چې انسان له خورا قدیمو زمانو څخه د فطرت په جذباتو او ولولو کې د خپلو پټو میلانانو ترجماني د شعر په ژبه وکړله . هغو اشعارو غیر مادي او روحاني او د عالم بالا څخه یو منبع درلود، او شاعر د هغه غیر مشاهد او خیالي عالم استازی ګڼل کېدی .

د یونان قدیم اساطیر وائي چې آمفیون د جوپیټر زوی، هغه میتالوژیك شاعر او سندرغاړی ؤ، چې د تب د ښار په ودانولو کې به ئې به ښه ږغ او سحرناکو نارو، خپل ارغنون واهه، او دې سندرو به داسې اثر درلود، چې کاڼي به چاودل، او شاعرانه به ئې راخستل، او ده به د کلا په جوړولو کې کارول . د جوپیټر له اونو څخه یوه [ موس یا ـ میوز ] د شعر الهه وه، چې شاعرانو به د هغې د جلال او جمال له لوړه عرشه الهام اخیست .

د شعر د خیالي روایاتو د غه لوړه افسانه ډېره پخوانۍ ده؛ خو بدې اخرو پېړیو کې امانوېل کانټ د جرمني مشهور فیلسوف او محقق، د آیډیلزم او خیالي شاعرۍ مکتب په مرتب ډول وپرانست . دی وائي چې هنر او آرټ بخپله مطلوب او بالذات مقصود دی نه د کوم بل غایت لپاره . د هغه نظر به ده

چې آرټ د آرټ لپاره بولي، او هغه په یوه مجرد او غیر مادي دینامیکیزم پورې مربوط ګڼي، او وائي چې د دنیا انسانان خو په نژاد او جنس او ژبه او مذهب او مشرب کې سره مختلف دي، مګر د دوی په شعر او آرټ ئې یو ډول وحدت او د معانیو تجانس او د افکارو هارموني شته، او دا خبره ثابتوي چې د انساني آرټ منبع یوه آسماني او روحاني مشترکه او واحده سرچینه ده، زموږ شرقي مفکران او شعراهم آرټ له د جمال یو عالي او آسماني غیبي منبع مني، او مخصوصاً صوفیان خو بل څه نه وېني او نه ئې مني .

[شیللر] د جرمني یو آیډیالسټ شاعر دی؛ دی د آرټ د غه الهي او جمالي غیبي انتساب په یوه خورا لطیفه او خوږه قطعه کې داسې بیانوي:-

«لوی خدای خپلو بندګانو ته ووېل چې دا تو له مځکه ستاسې ده، هر څوك دې خپله برخه ځنې واخلي» خلك ولاړل، دهقانانو او زمیندارانو مځکې او پټي واخستل، سوداګرانو پیسې او مالونه یوړل، ملایان په مـزدکو کې کښېناستل کشیشانو ګرجې ونیولې پاچهانو ملکونه او خزانې واخیستې .... د مځکې مال دولت وویشل سو، خو چې د شاعر وار راغی څه نه وه پاته! ده پر خدای د ج، عرض وکړ چې: ای لویه خدایه! زه

خوسته یې په مخلوقاتو کې تر ټولو ښتین یم، خوښه مې نه ومېنډل؛ نش لاس پاته سوم . خدای «ج» وویل: ته چیرې وې؟ خوخپله برخه یې دې وړه! شاعر وویل: او یه خدایه! هغه وخت چې ستا دعرش په غولي کې گرزېدم تاته مې کتل، ستا کلام ته مې غوږ و، زه په آسماني مېو مست وم، ځکه مې د ځمکې نعمتونه هېر سول .... خدای وویل: اوس خو تاله په ځمکه کې څه نسوه پاتې نوزه ستا یم، ته تل زما په درگاه کې اوسه ستا ځای دلته دی، دلته اسلامي عرفا هم لکه غربي مفکران، دجمال او آرټ مبدأ یوه ماوراء المادهٔ دنیا کې لټوي، او [مولانا جلال الدین بلخي] هم دهغې غیبي دنیا په یاد سندرې وائي او خپل آرټ دهغې معنوي او روحاني دنیا د یوه واده انعکاس اثر، او دهغې تر یه دیاد دلسوزو گداز گڼي :-

بشنو از نی چون حکایت میکند
و ز جدائیها شکایت میکند

کز نیستان تا مرا ببریده اند
از نفیرم مردوزن نالیده اند

«مثنوی مولوی»

همدغه مقام دی چې داسلام اوی پوهنیال حجة الحق [ابن سینای بلخي] هغه ته اشاره کړی :-

«هبطت الیك من المحل الارفع ورقاء ذات تعزز وتمنع» تاسی وگورئ چې د آرټ آیډیالي مبدأ د قدیم یونان او اروپا او داسلام د صوفي او مفکر او شاعر تر منځ مشترك دی، که څه هم یوناني مبدأ فقط یو خرافي او میتالوژیك روایت دی، او د جرمن شیللر هم نش خیال ځلولی دی او اسلامي

مفکرین هم له یوې داسې غیبي دنیا او غیر مادي او نامحسوس لوړه مقامه گڼي چې انسان هغه ته وړاندې او ننه نې لیږلای سو ځکه چې هغه یوه ملکوتي ماوراء المادهٔ او میتافزیکل دنیاده، خو بیا هم دغه فکر او دغې تیوري په قرنو قرنو دانسان پر دماغ حکومت کړیدی او د آرټ هغه عالي مبدأ چې یوه یوناني آیډیلسټ فرض کوله هغه د بلخ او قونیې قلندر هم تصور کړیده، او کله چې صوفي پښتون شاعر [رحمان بابا] د شعر ارغنون ږغوي نو د مولانای بلخي نیستان، را پیادوي، او په هغو مېو مست ښکاري له کومه ځایه چې د یونان پخوانی شاعر یا د جرمنی پیاوړی سخنور مست و .

آیډیلزم وائي: چې آرټ پخپله مقصد او هدف دی بل غرض نلري، د شعر؛ موسیقي، نقاشي او نورو نفیسو صنایعو د الهام منبع (عالم غیب) دی.

خو دا تول نفیس صنایع او د آرټ د ودې ځانگې د ظهور او خارجي تحقق لپاره له [عالم شهود] او مادي محسوساتو څخه کار اخلي . تر اوسه هم د انسان پوهنې او طبیعي علومو، د یوه آرټیسټ او فنکار داحساساتو او جذباتو لپاره کوم مادي او طبیعي مقیاس ندی کشف کړي نو ځکه د اصالت تصور او آیډیالزم طرفداران د آرټیسټ کې الهاماتو او لیاقتونو لپاره یو عالم غیب او عرش الهي فرضوي او آرټ دالهي جمال او غیبي ښکلا یو انعکاس او نماینده گڼي بولي، او زموږ صوفي شاعر شیخ متي خلیل (کلات بابا) دغه مقصد په څه شر گنده ژبه بیانوي :-

پر لوړو غرو هم په دښتو کې
په لوی سهار په نیمو شپو کې

په غاړه، زغ، او په شپېلکو کې — یا د وېرو ژلیو په شپېلو کې

ټول ستا د یاد انـتاري سوري دي
دا ستا د مینـې ننـداري دي !

خاوندهٔ ! ښـکلي ستا جمال دی — ښـکاره ئې لوړ په اوړ کمال دی
که ورځ که شپه، که بهرېه، کال دی — ستا د قدرت کمکی مثال دی

ستا د لـوړو نوبـتو رڼا ده
دانه چې چـوړه تماشا ده

داوه د ایډیالزم مخنی څرګند مبادی په شرقی او غربی ادب کې؛ چې دا انسان داید یالوجی او فکري ارتقاء او ادبي حرکاتو شمزی ګڼل کېږي مګر هر څوني چې انسان د میټریلزم یعني مادي فلسفې په دګرمخ کې ولاړ، او حسي او تجربـې فلسفه خپره سوه، نو د پخوانی آیډیلوجي پـه مقابل کې د ریلزم دفکر یو نوی مکـتب یعني حقیقت او ایجابي فلسفه ودرېده؛ چې ددې طرفداران خپل ټول مبادی د «تجربي او عقـل او حس او حقیقت» پر ستوزدي دوی آرټ یوانساني او مادي مخلوق ګڼي، او فقط دژوندانه د ښېګړو او اجتماعي او حیاتي مقاصـدو لپاره ئې استعمالوي . دوی وائي چې هنر دانساني ژوندانه نتیجه ده، او انتقاعي شی دی . دغه وزم او آهنګ چې د شعر او موسیقي اساس دی؛ او هم نقاشي او حتی رقص او سرود او ټول مستظرفه صنایع دا انسان د کار د آسانتیاو لپـاره دي .

رقص د کار مخصوص اشـکال دي، د استرالیا د خلکو نڅا د دوی د پخوانو اسلافو هغه حال ښیي چې هغو وحشي انسا- نانو بـه د وښو ریښې څڼګه راکښلې او څڼګه به ئې ځانو ته ورته کېږول چې به هغو کېږده مره کړي . د امریـکا سرخ- پوستان نراوسه هم د غرڅو د حرکاتو په ډول ناڅي، چې هغهٔ پدې چم ښـکار کاندي . دوی هروخت د ښکار په انتظار د غرڅو په دود ایشله کوي او د دوی د آرټ مبدأ صرف مادي ده، له ژوندانه سره مربوطه ده کوم غیر مادي او غیبي محرك ئې نلري پـه دې ریلیستیك تفکر کې فروید وروستني سایکا- لوجسټ دوني اغراق کوي، چې ټول فنون او صنایع او انساني اخلاق او روحي محرکات او تاریخي حـوادث سیاسي او اجتماعي انقلابونه پر تناسلي خواهش بنا کوي، او وائي چې آرتستان ټول هغهٔ خلک دي چې د تناسلي محرومیت زجر ئې ایدلی، او د دغه زجر تلافي پخپل هنر کـوي .

عجیبه خو داده چې یوه یوه هیال یو کـتاب لیـکلی دی د [ کارا- وریټم] په نامه او دی ټول میو- زیـکل آرټ خاص د کار لپاره بولي او دا ثابتوي چې میوزیك خاص د کار د تسهیل لپاره پیدا شو، دا د له ریلستان او حقیقیون وائي؛ چې ژوند یو حرکت او فعالیت دی، او ادبي ژوند هم د دغه حرکـته سره پر انقلابي لـوړ ملګري دي ؛ انسان د تـکامل او بشپړتوب پر خوا

روان دی او د دغه تکامل لپاره یو علمي فارمول هم سته . چې د بشریت (تکامل) حرکت له خپله مرکزه په بعد کې د مربع په حساب سرعت مومي او آرټ هم تل په دغه سرعت د انسان د ژوندانه د کتوا او اړتیاو پر مخ روان دی، ځکه نو دوی وائي: چې آرټ د آرټ لپاره نه دی، یعنې بالذات مقصد نه کېدای، بلکه تل د ژوند خادم دی او آرټ د ژوند، د دوی لپاره هنري مسلک دی. دا ډله مفکران اوس ترقي پسندان بولي، او د دوی آرټ هم یو مترقي او آلي شی گڼل کېږي د دې ډلې هنرمندانو د هنر مبدأ پخپل ژوندون او ماده او عمل او کار او اجتماعي او انساني سایکالوجي دی دوی آرټ د ژوند لپاره غواړي او د انساني طبقاتو په ژوند کې ئې د یوې مؤثرې وسلې په ډول استعمالوي او نن ورځ دوی گړني ادب یا ترقي پسند هنر په نامه د پر خلک: د هنر د تجدد مدعیان دی او غواړي چې لکه ساینس هنر او آرټ هم د انساني بشریتوب په مقاصدو کې دا تړم په ډول استعمال کاندي. بلینسکی د دې ډول آرټ یو پېشوا وائي:

چې زموږ آرټ به په اجتماعي روابطو کې د ژوندانه لپاره وي او نوي ادب به پر نوو مادي او انتفاعي لارو ځي، د انسانانو محرومه ډله به خوش بخته کوي او د پېوزلو او بې اسرو په چونگړو او د خوارانو په کوډلو کې به گرزي، او دغه نو یو حقیقي آرټ دی .

تن د دغو دوو ډلو هنرمندانو څېړنې په هر ځای کې اورېدلی کېږي ترقي پسندان وائي: چې دا ریلستانو هنر جامد او غیر مفید او صرف تخیلي دی انسان له تکامله محروم کوي، او دغه خیال پرستي وه، چې انسان ئې په ډېرو اجتماعي نارو غیو اخته کړی ؤ .

که موږ دغو څېړنو ته ځېر سو دا به ښکاره سي، چې نزاع لفظي ده . او د یوه ترقي پسند ریلست غایې هدف هم هغه دی چې یوه آیډیلست هنرمند به ئې تصور کاوه .

در حیرتم که دشمنی کفر و -
دین چرا ؟
از چراغ کعبه و بتخانه روشن
است .

حقیقت خو دا دی، چې د آرټ مبدأ جمال دی، او په کائناتو کې هر ځای په هر شي کې د جمال ننداري ښکاري، شعر د کلماتو او الفاظو او تخیل جمال دی موزیک د ږغو او آهنگونو جمال دی. رقص د بدني حرکاتو جمال دی، نقاشي د اشکالو او خطوطو جمال دی، خو فرق دا دی چې دغه ښکلا د جمال د کوم مقصد لپاره استعمالېږي؟ که یوه آیډیلست فنکار، انساني ښکلا په تخیلي او تصوري ډول ستایله او یو ترقي پسند هم دغه جمال ستائي، او دده د هنر سرچینه او مبدأ، هم هغه عمومي ښکلا ده خو دا ډله ئې د انسانانو د حیاتي مقاصدو لپاره استعمالوي که نه وي، ماشین او سپاره او جوغ او د کار توري خیرني آلې خو دی هم نه ستائي، او نه د میکانیزم په زلفو او جمال پوري بدلي وائي . خو موږ به د دې ډلې نه حق ور کوو چې د آرټ جمالي مقاصد د ژوند د تنظیم او د انسان د ارتقا او ښېگړې لپاره استخدام کاندي او د آرټ یو حیاتي شي وگرزوي اما کله کله د انسان فطري میلان یوه مجرد جمال او آرټ ته هم دی، چې د کوم غرض لپاره نه موزیک آوري، او نه کوم شعر بلکه د روحاني تسکین او

وجداني آرام لپاره ترنم کوي، يا بوباغ او ګلزار ګوري يا شعر وائي، يا ناڅي، چې دا هم دانسان يو روحي ضرورت دی، او هم ګمان کوم چې ترقي پسندې با همدغه روحي احتياجاتو پوره کولو اړتيا لري.

وائي چې دانګريزي مشهور اديب او فنکار شکسپير: په خپله دراماتو کې د دواړو مسلکو لحاظ کړيدی، آيډيلزم او رياليزم ئې سره ګډ کړيدی او يو مرکب معجون ئې ځني جوړ کړيدی، چې ډېر مفيد او خوږ او دتناول او شهلو وړ دی.

که موږ دشرق شاعري ته دقيق شو، دغه کار لا مخ کې شرقيانو کړيدی، اکثر فنکاران وه، چې دوی د آيډيلوجي د آسمان پر کنګرو ګرزېده مګر د انسان : ژوندانه او حقي طبقاتي شکرو فکر ئې هم درلود، تاسې دسعدی آيډيلي تغزلات او قصائد ولولی، بيا نو ګلستان او بوستان هم وګوری چې دا سحر کار فنان او آرتسټ څه بلا کوي؟

زموږ هنرمند فنکار او ډېر مشهور شاعر خوشحال خان هم په خپل ادب کې دواړی خواوې سره ګډې کړيدی، ده آرټ دژوندانه لپاره داسې استعمال شويدی چې د آيډيلزم مزايا او هنرونه ئې هم ندی پاېللی، خوشحالخان که شاعر ؤ، خو يو جنګجوی سردار هم ؤ، او دقوم مشر هم ؤ، ده هنر ژوندؤ او ژوند ئې هنر ؤ. کوم وخت چې به د ميني په معنوی دنيا کې يو يوخ آيډيالست ؤ، نو به ئې مجرد عشقي سوزان اشعار ويل؛ او د آرټ تخليق به ئې ادې جهته کاوه، چې بخپله دغسې آرټ د روحي تسکين لپاره ده ته ضرور ؤ او يدغه تخليق کې ده کوم بل غايت او هدف نه درلود، دلته ده آرټ خاص د آرټ لپاره ؤ، آيا دغسې روانه او سليسه او خوږه غزل تاسې نه پخپله خوږه پښتو کې پسله ډېرو روزانه دماغ فرسائيو او روحي محروميتونو څخه خوند در کوي؟ آيا دغسې مجرد آرټ انسان له بکار ندی؟ زما يو سپين ږيری پاذوقه متقي او فقيه استاد ؤ، چې د احاديث او تفسير او فقه او ادب ترجمې درسونو ورو سته به ئې ويل: اوس روحي تفکر او تفريح ته ضرورت دی نو به ئې دخوشحال يا شيدا يا رحمان يا حافظ يا جامي اشعار په ښه ترنم آورېدل، او ويل به ئې: دا دروح غذا ده!

بدې غزل کې زموږ مقتدر فنان (خوشحال خان) صرف د آرټ او نفاست تخليق کوی:-

ستا وصال لکه درياب دی زه ماهی
په هجران دی هر زمان دی په ماښام
په زړامې ځنې خواست دسپينې خواې کړ
په خندا ئې وی چې څه کادا سړی
وئې څوک ئې چې زما په کوڅه ګرزی؟
ښه حاضر ځواب مې ور کړ ستا مړی
هم په څور لکه ناله، هم په تن نال شوم
پېلتانه را پاندی وکړ کار دای
دځوانۍ بهار څه ښه دی دريغه دريغه
دا بهار که همېشه په دنيا وی
ګل، سنبل، نسرين، نرګس، لاله، غوټی
دمقدم سره دی راوړ درست پسرلی
چې ئې وايسم په غېږ کې رانه ګوری
لکه مست د مور په بيو کم کبلی
داشيرين ياران به نه وينم چې ومرم

خدایه ما په جهان تل لري ژوندی
دې صفت د شاه پیربو ارو پیده شي

ولې ستا د مخ څوک نه وینې مخې
اورنګ زیب به د کابل د خلل غم کا

ساقي وخت د نوبهار دی راوړه مې
چې زړه سوی دی د خوشحال په فریاد نشي
په سینه کې دې سندان دی که زړه ګی؟

دخوشحال خان په لوی دیوان کې به تاسې دغسې روحي تفکهات ډېر وموئ او دا نه زره بیتونه داسې دي چې فقط د آرټ په مجرد او غیر انتفاعي اړخ پورې اړه لري. مګر خان خو پوسیاسي حکمدار هم ؤ، ده خپله هنرمندي او آرتیستیک لیاقت او فني ذوق پداسې چارو کې هم استعمالاوه، چې هغه د روزمره ژوند سره اړه لري، او کله د اوسني ترقي پسند په دول پومدقق نقاد ځني جوړېدی، چې د ریاکارانو دربار او مکر پرده ئې څیرله، او په ژبه ئې د توپك کار کاوه لکه چې وائي:-

ز ما ژبه نه ده اور ده
ګـزار ونه د تـوپك کا

انتقاد او کریتسکزم خو د نوي ریلزم او ترقي-پسندۍ روح روان دی، تاسو ګوري چې خان ځني مذهبي متعصبان او ریاکاران په کومه ژبه رسوا کوي:-

داناراج لکه شیخان کاندي په مکر
افریدي نـدي دا هـسې تـاراجي
صفائي د زړه پکار ده نه د ږیرې
څو په ږیره ګرزوي شانه عاجي؟
دائې سحر د بنګال د مخ کې راوړ؟
چې درست اوښ په کټ کې وماته حاجي!!

دغه انتقادي تېره ژبه یوازې شیخانو ته نه ده متوجه بلکه ظالم مغول زمامداران هم رسوا کوي، او په هغه وخت کې چې خلکو به د اورنګ زیب پر دربار سجدې کولې، او د ګردنکشانو او لویو جهاندارانو څټونه هم د مغولو تخت ته ټیټ ، خوشحالخان به کومه ژبه او په څه ادبیانه استهزا او عارفانه تجاهل د هغه ریاکاري ښیئي:-

وخت د اورنګ زیب دی
د هر چا تسبي په لاس دی
خدای خبر ئې دی په زړونو
چې ریا که په اخلاص دی؟

تر دې لا خوږه دا ده، چې د مغولو دې ظالم امپرا-طور او ر شخصي افعال څنګه رسوا کوي؟

ددې دور شیخان د پردی اور پلور
اورنګ زیب پادشاه دواړو دی انځور
په هغه چاره قلم ساز کا قرآن کې
په هغه چاره ښېرګ پرې کا د ورور
په رکوع کې تسبیحات د پلار د مرګ کا
په سجود کې زوري خپله مشره خور

دخوشحال ژوند له قومه سره ؤ او د خپل آرټ په وه-لو به ئې د قوم د اصلاح او وینبولو لپاره وقف کړې وه، د پښتنو بد عادات او عیوب به ئې غندل او دغه انتقاد ئې داسې تېز او موجه او انتفاعي ؤ چې د یوه انو په عقیده خوشحال یوازې شاعر نه ؤ بلکه یو سوشل سایکولوجست هم ؤ، ده لیدل چې پښتانه د خپلې جزوي ګټې لپاره ځني ملي هدفونه او قومي او عمومي ګټې تر پښو لاندې کوي، او هم پدې سبب دوی د خپل ملي مرکزیت نښتنان ندی او د مغولو د استعمار ښکېل ئې ملا، ژوند

وروړانوي ، نو دي د پښتنو حال بيانوي :-

اوښې له بـاره سره کور نه ورغلې
په اوراجه داوښې دغاړې د جرس دي

د مغولو او فرنګ استعمار خو زموږ پښتانه داسې استعمال کړه خو اوس هم پاکستان غواړي چې پښتانه په هغه دول وغولوي چې اوښې له باره سره نه اخلي، نښ داوښې دغاړې ګنګرې نالا کوي!

او د پښتنو د نبض شناس شاعر او مشر داو بدار ښتیا کېږي بل ځای دده انتقادي ژبه پښتنو ته د دوي

یو بل عیب داسې ښيي :-

پښتانه واړه بد خوي دي
کور په کور کاندي غورزي

یو چې سر کاندي په يو ر نه
بل ئې و وهي مغزي

دا اجتماعي اوي او مخرب او مدهش عیب تر اوسه هم په موږ پښتنو کې کله سته کوم چې خوشحال خان څو سوه کاله دمخه څيني ژړل او و بل ئې :-

په بل غشي بل تو يك و يشتلي نه يم
که و يشتلي يم خو بيا يخپل تو يك يم

خوشحالخان د ریلزم په دنیا کې مظلوم آزاري يو راز سبوعيت او حيوانيت بولي؛ او داسې ښکاري چې دده آرټ د غریب او بې وزلي په نفع هم استعمال شوي دي لکه چې وائي :-

داچي خانان دي يا امراکان دي
په هند کي ګرزي په هر مکان دي

غرڅي هدو نه د مظلومانو خوري
زما تر فهم واړه د دان دي

آیا په ترقي پسند ادب کې به هم تر دغه اوږ ز نده او ښد تعبير د مظلومانو په طرفـداري کې

[ پخې خبرې ]

## جنګ

د جنګ د پاره چمتو کېدل يعني د سولې ساتل ،
«جارج واشنګټن»

* * * *

جنګ د وحشيانو کار دی . «ناپلیون»

* * * *

هر څوك چې جنګ خپل خوي او کسب و ګرځوي له لاسه څخه ئې بېله بې رحمي او ظلم څخه بل څه نه کېږي . «تولستوي»

* * * *

هغه څوك چې په جنګ کې بر طالع او بخت نېکيه لري تر تولو لايق او وړ دی . «داوي فردريك»

پيـــدا شي ؟

داوډخان د فني استعداد او قريحې لنډ بحث چې د آيډيالېزم او رياليزم له پلوه وڅېړل شو، او لنډه نتيجه ئې داده؛ چې خوشحال خـــان يو مقتدر آرټـسټ او فنـکار دی چې دده آرټ او فني تخليق هم آيډيالوجيك مزايا او ښېګړې اري، چې فقط مجرد آرټ ګڼل کېږي، او په آرټ د آرټ لپاره خدمت دی . امادي يو رياليسټ هم دي، چې د آرټ په ذريعه ئې ژوند ته هم خدمت کړی او خپل هنر نه ئې انتفاعي او عملي دده هم ور کړېده.

نـو ځکه :-

همېشه به بري ناري وي د بلبلو
داچي ساز کړ نن خوشحال په و بل باغ

تاریخی:

ښاغلی [سربن]

# نیمروز

ددې کلمې په لیدو صرف [نیمه ورځ] د سړي فکر ته راځي، حال دا دی چې دا د یوې ځمکې نوم دی او د تاریخي پلوه ئې څه حیثیت هم معلومیږي تر هغه ځایه چې مؤرخینو او د علاقه خلکو اظهار نظر کړیدی دا سیمه ئې د سیستان پادشاه په شاؤخوا نواحیو کې بللې ده؛ ځکه ئې د کندهار هغه پخواني ښار ته چې د هوتکو تر سلطنت پورې ودان او افشار نادر وران کړیدی هم منسوب وي، دا ښار چې د کندهار د اوسني ښار وختیځې خوا ته د سرپوزې دغره په لمن کې پروت او کنډواله ولاړ دی؛ ختیځه خوا ئې تواله د سرپوزې غره نیولې ده، دا چې څوک څوک د نیمروز اشاره ورته کوي وجه ئې داده چې دماپښین له خوا د پروختې دا ښار دغره په سایه کې پټ شي او چې په نورو هوارو ځایو کې سپینه ورځ وي دلته بیا دماښام تخښې ښکاره شي او ورځ ئې لکه نور ځایو نه د لمر د روښنائي څخه څه محرومه وي چې د غره ددې طبیعي موقعیت په وجه رښتیا [دلته ورځ نیمه وي] نو کوم کسان چې پردې ځای د نیمروز حکم کوي وجه تسمیه ئې هم داده .

نور نظریات چې نیمروز و بللی خوانه کشوي پدې ډول دی:-

د ریاض المرتاض مؤلف « صدیق حسن » لیکي: چې زابلستان او نیمروز نن ورځ د سیستان په نامه سره شهرت لري، مگر د تاریخ العجم عربي تاریخ لیکوالکی پیاد نوموړی نظریې څخه مخالفت ښکاره کوي او وائي: د زابل (سیستان) و لویدیځې سیمې ته نیمروز ویل کیږي .

په شهنامه کې لیکل سویدي چې د سیستان لویدیځه برخه لدې جهته څخه نیمروز بلل کیږي چې پخوا دلته د اوربو بولوی دانو ؛ [هوشنگ] په نیمه ورځ کې وچ او د ښار بنائې پرو کړه .

د سیستان د تاریخ لیکوالکی پیاوائي: چې نیمروز د سیستان له ښارو څخه یو ښار و ځکه چې د سیستان تولواکانو به دلته په کال کې یوه ورځ عدل وداد کاوه نو لدې جهته څخه ئې نیمروز باله، [ ابوالفرج بغدادی ] بیا بیخي بله لار اخیستې ده دا اقوال کرت نه مني او لیکي: چې د نړیه حکماؤ تو له جهان د لمر پر راختلو او لوېدلو باندې وېشلی دی له هغه ځایه څخه چې لمر په لنډه ورځ کې را وخیژي او د لوېدیځ ولورته په بیخي اوږده ورځ کې واوېږي دغه فاصله پر څلورو برخو باندې وېشل سوېده چې شمالي حدئې باختر او جنوبي حد ئې نیمروز بولي، منځنۍ برخه ئې بیا پر دوو برخو باندې وېشل سوېده چې ختیځه برخه ئې خراسان او لوېدیځه برخه ئې ایران بللې دی ، د تاریخ بیهقي مؤرخ دده دا نظریه تر یوې

[نور په ۱۱ مخ کې]

د کابل له شهر آراء څخه

# زار سپېدلی
# لیـــــــــک

د ډېر ګران وروو کرزي صاحب!
د کندهار مجله‌ما ته را رسېږي.
هېر شوی نه یم. ژوندی دی
غوا ړم او د کام په خدمت ستړی
وروره! ډېر خوشاله یم چې د
کندهار مجله پخوا هم نسبت
نورو اطرافي مجلو ته ستایل
کېدله او اوس هم ستایل کېږي.
دلته ځانا او خپلو همو وطنو الو
لیکوالو ته چې دا موفقیت ئې
مرهون دی څه بې بولم ځکه
بدې خدمت کې بې برخې پاتې
شوی یم، بیا دا چې خپله هغه
ذمه واري چې ما د یوه کندها-
ري په حیث پر ځان لازمه بلله
دژوند بد و شرایطو او کړاوو نو
را څخه پاتې کړېده، به هر حال
زه بې یم او د مجلې متعلق ددې
پرې جبران پر ځان پور بولم.
وروره! د کندهار مجلې درې
ګڼې پو ځای د سید جلیل اقا
په واسطه ما ته را ورسېدلې او د
رسېدلو سره سم ماد ۱۳٤۰ کال
د قوس مجله و کتله ډېر ښه
خوند ئې را کې؛ مجله د مضامینو په لحاظ ښه د ره مجله ګڼل
کېږي په ژباړه یا د مجلې په دوهمه برخه کې د ستر و پښتو او یانو
او پاچهانو و پنا سته انتخابي ابتکار بولم.
په مضامینو کې رنګینې یعنې تنوع او د ښو پخو لیکوالو آثار
یکښې ترجمه یا اقتباس شوي دي. سر مقاله، د هیګل او مار کس
مضمون په عین صورت د هلن کلر، کلاسیک، نوماس ادیسن مضامین
زما خوښ شول مګر شعری انتخاب دی او ر التفات ته ضرورت وینې.
او پښتو؟
وروره! د ځینو مضامینو پښتو ما ته ښه ډېره کمزوري وایسېده او
دا علت نه شو را معلوم چې ولې؟ خیر؛ هر اخبار په یوه برخه کې د
یو ډول کمزوري خاوند وي؛ مګر بیا هم را شه چې ستر ګې انګېرو
پرېږدو مثلاً:- [د شاپېرپانو ....]
تر عنوان لاندې په مضمون کې
دا جملې و ګورىء!
۱-« د شاپېرپو پو شمېر انګلو ته
چې د ډېرو ښکلاؤ سره لیدل
کېږي اکثراً د یوه انسان
څخه نورو ځایو ته خپاره شوي
دي ».
داوه هغه جمله چې ما ته ئې دا
ډول لیکنه سمه او روانه معلو-
مېږي. « د شاپېرپو ځینې هغه
انګلو ته چې په خوږه ژبه وېل
شوي او او ر پدل شو بدی دیوه

(د لسم مخ پاتې برخه)

اندازې پوری معقوله بللې ده
او پدې نظریه کې و رسره
همنوا دی.
نو ددغو پورتنیو وجوهاتو او
اختلافاتو په جهت قطعي څنګه
ووایو چې نیمروز پلانی ځای دی
خو که بیا هم پدې سبب چې دډېرو
اتفاق د سیستان پر حدودو راغلی
دی دا ګړی با ید [نیمروز]
ملته فرض کو.

انسان د خراب څخه، د نورو انسانانو خواونه رسېدلی او خپاره شوېدی ».

یا دا جمله: « دا انګلونه خورا ډېر دي چې مشهور ئې طلائي وېښتان ډېر شهرت لري ».

که دا ډول لیکل شوی وای روانه او سلیسه پښتو به وای: « دا ډول انګلونه خورا ډېر دي چې د «طلائي وېښتان» انګل ئې خورا مشهور او ښه شهرت لري ».

په عین مضمون کې دا جمله هم روانه پښتو نه بلل کېږي « که څه هم ئن څوك و شاپېر باتو او د دوی وجود ته کومه عقیده نلري، وان کلیوالی خلك او اغلباً ډېرو کې دا انګلونه خوښ لري » یعنی که دا ډول لیکل شوی وای روانی به ئې درلودای « که څه هم ئن شاپېر بوتۀ څوك عقیده نلري خو بیا هم کلیوال او پلاز یانه بیا واړه دا انګلونه خوښوي ».

په دې ګڼه کې تر یوه عکس لاندې یوه دا ډول جمله لیکل شوېده: « پخوا پدې سیمه کې عصری تعمیراتو وجود نه درلود » دا جمله که دا ډول وویله شي روانه او د عام محاوري ته نژدې کېږي « پخوا پدې سیمه کې عصری ماڼی یا تعمیرونه نه وو ».

د کلاسیك د مضمون تر عنوان لاندې مضمون کې دا جملې وګورئ:-

۱- موږ اکثراً د کلاسیك لفظ اورو چې د خلکو په اظهاراتو کې استعمالېږي.

دا جمله که دا ډول وای روانی به ئې درلودای «موږ د اکثرو خلکو له خوا څخه د کلاسیك لفظ اورو یا دا چې د کلاسیك لفظ خلك دا ډول استعمالوي ».

۲- یا دا انګلیسي ادبیاتو د کلاسیك په جمله کې دغه اثر ډېر لوستل کېږي ، د دې جملې په معنی زه ښه پوه هم نشوم خو احتمالاً وایم چې دا معنی به افاده کوي، یا به انګلیسي کلاسیکي ادبیاتو کې دغه اثر ډېر لوستل کېږي.

دغو رمال تر عنوان لاندې مضمون کې دا جمله « یوه شاعر د عربو د یوه بډای په ویاړ اندې د مدحې قصیده ولوستله » که دا ډول افاده شوی وای عامه محاوره به وای « یوه شاعر د عربو یوه بډای ته یوه قصیده ولوستله ».

بله جمله په همدغه مضمون کې « د ډېری خوشالۍ او خندا څخه ئې خوله دوری او هیسته ولاړه » چې روان او محاوري شکل ئې دادی: « د ډېری خوشالۍ او خندا څخه ئې خوله وېره ولاړه ».

یا دا جمله: « د شاعر چې د دا هومره مبلغ د بخښلو آواز تر غوږ شو » دا ډول سادګي پیدا کوي « شاعر چې د دونی یا دومری بخښښ ازانګه یا زغ واورېد ».

ښه به همدې ګڼه کې یو شعر هم د [ کوچنی ] تر عنوان لاندې نشر شوېدی چې په یوه بیت کې ئې د « غال مغال » لفظ دا ډول استعمال شوی دی « کوچنیان ؤ په غال مغال کې » د شاعر « زوږ » غرض دی زوږ که نه وي « چیغاري » چیغاري که نه وي « کرزې » دا ډول کلمات د فارسي سوچه غال مغال پر ځای استعمالېدلای شوای.

یا د « نهال نو رسته » صفت په دې بیت کې [ که هر څو د پښتنانه د ... نهال نو رسته یم ]

دا ئې مطلب « ناندړلښته » ده چې د نهال نو رسته به رنګ راغلی ده. بل ځای [ د جهل په دام بسته ] او داسې نور هم شته چې موږ پښتانه دا مطلب دا ډول څرګند وو:- « په ۱۳۸ مخ کې »

ښاغلی عبدالله [بختانی]

# د پـــــا ڼېنو

# په خوب کې

ګرانه پانېنو !

ستا هغه [ کره کتنه ] چې د کندهار مجلې د تېر کال په اسد ګڼه کې زما په بوټی لیکنې [ د مذکر جمع ] باندې وه ولوستله .

زه به دې د ډېر خوښي شوم چې زموږ ځلمو لیکوالو انتقاد ته مخه کړېده او د علم او ادب ارتقا او انکشاف ته ئې مخه شوېده . زه ستا دغه اقدام ته په درنه نظر ګورم او آفرین درته وایم .

هیله ده چې دغه سلسله تعقیب کړې او تل دغسې انتقادونه وکړې .

ګرانه وروره !

زما په مقاله باندې ستاد انتقاد په باره کې زه ځینې خبرې لرم مهرباني وکړه تر اصلي خبرو د مخه دا یوه فرعي مګر ضروري خبره هم واوره !

هغه دا چې زما مقاله په کابل مجله کې خپره شوېده ، او تا ور باندې په کندهار مجله کې انتقاد کړېدی دغه کار شاید کوم اصولي موانع ونه لري

خو دومره ده چې د کابل مجلې او د کندهار مجلې مشترکین اکثر آسره بېل اشخاص دي .

او هغه کسان چې کابل مجله ورته رسیږي او د کندهار مجله کې اشتراک نه لري هغوی ستاسو له انتقاده استفاده کولې نه شي او کوم کسان چې کندهار مجله لولي او کابل مجله نه .

هغو به په کابل مجله کې زما مضمون نه وي لوستی او بیدې سبب سره ددې چې ستاسو له مضمونه پوره استفاده کولی نه شي ، سم قضاوت هم نشي کولی او ځانونه به تیاره کې وېنې .

نه باور وکړه ! چې زه پخپله هم متاسفانه په کندهار مجله کې اشتراک نلرم او که زما د یو دوست مهرباني نه وای نو زه به هم ستاسو د کره کتنې نه بې استفادې پاتې وای . « ۱۴۰ مخ کې »

# « د وار سپدلي لیک »

## پاته برخه

« د جهل په کومې پا کندې کې اوېدلي یم » پا « رونديم » مګر دا ډول کلمات نه داچې پښتو ندي بلکه پخپله هم اشو ورته ویلای پادا چې وائي « د ناپوهو ګلدسته یم » آیا دا ډول جمله ستاسې په قضاوت په کندهاري محاوره کې اوس شته پاد قدماو له خوا د پاخه او مستند لفظ کلمې یا جملې په حیث لیدل شوي او قبول شوېده .

په هر حال د خپل ښاغلي ورور ګرزي پا نور و تو لو هغو لیکوالو څخه ددې ردجرئت معافي غواړم او د مجلې د ښه والي په غرض د عفیفنا الخلق ردی ایسم په ډېر احترام .

« محمد دین ژواک »

گرانه وروره!
ستاسو په کره کتنه کې ما ځینې داسې نکات ولیدل چې هغه ستاسو په نفسیاتي کیفیاتو پورې اړه لري د هغه ځواب ماسره نشته؛ ځینې داسې نکې هم وې چې هغه د کابل مجلې په اداري پورې اړه لري نه ما پورې. ځینې داسې وې چې زما په معلوماتو یې ځانته فکر کړه او په ځینو کې ستاسو ډېر دقت په کار ؤ، چې زه به دې دوو وروستیو نکاتو په شاوخوا کې یو څه ولیکم.

دعنوان عربي کلماتو ته حیران کړی یې او زه دې ته حیران شوم چې ستاسو تجویز شوی عنوان [د مفردو، مذکرو نومو او اوصافو جمعې] کې هم دغه کلمات عربي ؤ [مفرد، مذکر صفات او جمع].

بیاهم ستاسو دغه تجویز پدې لحاظ چې په موضوع باندې واضح دلالت کړي زما خوښ شو.

خو د جمع په ځای د جمعې لیکل داسې مثال لري چې څوک د ډیفیانو په کتاب کې د لمونځ دعنوان په ځای لمونځونه ولیکي. ستاسو په دې ترکیب کې زه د مفرد د قید سره هم موافقت نلرم، دا پدې نه چې ستاسو مثال «اولس» د جمعې نوم نه گڼم او مفرد یې گڼم چې جمع یې اولسونه دي. بلکه د دې لامله چې زما د خپلې لیکنې په ۱۲ ماده کې د جنس نومونه په ۱۳ ماده کې مصدرونه او په ۱٤ ماده کې ځینې هغه کلمات چې د مفرده بڼه کې د جمع معنا ورکوي، او په ۱٦ ماده کې هغه صفتونه چې د مفرد او جمع دپاره یو راز استعمالیږي ذکر شوي دي پدې لحاظ یا نه شو [د مذکرو نومونو او صفاتو جمع] کله چې بخپله د متن نه معلومیږي چې بحث د نومونو او صفاتو دی نو د هغو ذکر نه فرضیږي.

او ستاسو تجویز ته د استحسان په نظر گورم.

د کتنه کوونکو د جوړوالو د نقص په برخه کې منم چې ډېر نواقص به ولري، خو گومې برخې ته چې تاسو اشاره کړې ده، هغه لفظي کتنه کوونکي به کلماتو کې د «خج» د شتوالي او نشتوالي په اساس جوړې شوې دي، لطفاً یې بیا وگورئ.

د مثالونو د زیاتوالي او کموالي په برخه کې ستاسو دا خبره منم د چې دغه پېښه بخپله د کتنه-کوونکو پر ماهیت باندې ډېره اغیزه لري، کېدای شي چې په هغو کتنه کوونکو کې چې ما ډېر مثالونه ښودلي دي ډېر نور مثالونه هم شته او په هغو کې چې لږ مثالونه ورکړه شوي دي، د هغو مثالونه په ژبه کې هم لږ وي.

او ما خپل مطلب پدې تراکت ادا کړی دی.

نوټونه او فوټ نوټونه که ډېر دي زما په نظر کې هم دغسې ښه ښکاري ځکه، که د ژبې د مطالعې په لړ کې ما گومه مهمه کتنه کړې ده په نوټ یا فوټ نوټ کې ځای لري، دی، نو ستاسو په توضیح به زه پوه شوی وای.

د لهجو په برخه کې دومره توضیح کوم چې اساساً ما دا مضمون د ننگرهار د لهجې په اساس لیکلی او په مهمو او مشهورو مواردو کې مې د کندهار لهجه هم تر نظر لاندې ساتلې ده، څرنگه چې زه د کندهار او نورو سیمو په لهجو هغومره واقفیت نلرم چې د ننگرهار په لهجه یې لرم ځکه دا برخه زما په مضمون کې نیمگړې غوندې ده، او دا نیمگړی کار هغسې بدې نیت کړی دی چې د زاملیکوالو*

* توجه دې خوانه واړوم
کوندې کوم محقق خپل
گرامر دتوراو لهجو په اساس
و لیکی .

دهغو نومونو په باره کې چې
مفردئې دمغیره عواملو په اثر
تغیر کوی اود تغیر شوی مفرد
او اصلی جمع شکل ئې یو
راز کیږی‌هم ناسوداشتباه سره
مخامخ شوی یاست او لیږ په
تفصیل ژغېدلی یاست زه به ئې
په لنډه صورت درته عرض کړم:
ما بخپله لیکنه کی په دغسې
موارد و کی دجمع شکل لیکلی
نه بخپله جمع، لطفاً بدې برخه
کی بیاغور و کړی .

هوا د تغیر ور کونکو عواملو
عبارت مغم .

د کندهاری پښتو له مخه‌چی
ناسو کوم یادونه کړیده؛ د
شپون، شکون،او کوز جمعی د
غاغلی رښتین د پښتو گرامر په
حواله ذکر شوی‌دی ، اوداو
زردالو، شفتالو په باره کی ما
د ننگرهار دلهجې په‌اساس د
جمعی شکلونه لیکلی دی .

که تاسو وغواړی چی دغه
شکلونه واوری، اوربدلی ئې
شوې په احترام .

# خوشالی

# او

# خواشینی

لیکونکی عزیزه [رشاد]



هغه موضوع چی عنوان ددې
مقالې تاکل‌شوی‌دی په‌هرځای
کی اودتولو انسانانو پرحال
شامل دی .

تاسو ددې مجلې گران
لوستونکی‌ځوان اوزوړ، تر
اوسه‌له‌دې ژ حالو ځنه‌ونلی
نه‌یاست یا به‌خوښ اوخوشاله
یاست یا به‌خوابدی او فکرچی
دغه موضوع د مرکب ترونخه
پوری‌زموږ سره‌لاس به‌گریوان
ده او پوکړی‌هم زموږ ځنه
بیلتون نلری .

اوس‌چی‌مو د ژوند دامهلگری
او د حیات داشریك وپیژندی
راسو‌چی‌هغه ترڅېړنی لاندی
ونیو، وگورو چی لویانو او
پوهانو د کلونو د تیرېدو په

نرخ کی د هغه په باره کی څه
راز مطالعې اوڅېړنې کړیدی .

ابراهیم لیکلن دامریکا جمهور
رئیس به‌ویل: « زیاتره کسان
دومره خوشاله دی‌چی دفکر
له‌مخې د خوشالی وسایلو ته
تیارشوی‌دی‌خوښی‌او خوشبختی
زموږ په وجود کی ده او له
خارجی‌دنیا سره کومه رابطه
نه‌لری .

ارسطو کلیس چی موږ هغه د
افلاطون په‌نامه سره پیژنو
وروسته له‌یو عمر تفکر څخه
ودې نتیجې ته ورسېدی چی د
انسانی‌ژوند په‌تولو چارو کی
کوم‌شی چی د اندېښنې او
نګرانی سبب‌وگرزی هیڅ‌کله

وجود نلري.
بدې وینا کې اسرار پټ دي چې باید وڅېړل شي. انسان کولای شي چې د ژوند ټول غمونه او کړاوونه په سړه سینه وزغمي. که څه هم دا خبره ډېره سخته ده لېکن اوی خدای «ج» وانسان ته دومره استعداد ورکړ بدی چې هر کله وغواړي له هغه څخه استفاده کولای شي داسې څرګندېږي چې زموږ تر تصور اضافه انسان د قدرت او ستر طاقت خاوند دی.

ملټون درې سوه کاله د مخه پداسې حال کې چې د سترګو له بینائي څخه محروم و پدې حقیقت پوه شوی او ویل به ئې: «چې د انسان ماغزه پرخپل وخت کولای شي د دوزخ څخه جنت او له جنت څخه دوزخ جوړ کړي» او هم ده به ویل: «چې بدبختي او بېنوائي دا نه ده چې انسان ړوند وي بلکه بدبختي دې ته وائي چې انسان د ړوندتیا تحمل ونکړای شي».

موږ باید د هغو پېښو سره چې چاره ئې نه کېږي اوسازش وکړو او د هغو چارو دا چې اخته چې زموږ له قدرت څخه وتلي وي بخلاص و. بدې باره کې د فرانسې نومیالی فیلسوف وائي: «هر انسان څومره چې د حوادثو له اندېښنې څخه ډېر بېږي هغومره پخپله له حوادثو څخه زحمت ګوري.

ګران لوستونکي چې تر دې ځایه دا مقاله مطالعه کړ بده وبه وائي چې دا خو د پوهانو لار ښوونې او ویناوې دي، آیا داسې کومه چاره شته چې موږ غم او خواشیني په عملي ډول له ځانه لیرې کړو او بیا هغه په خوشالي بدل کړو په ځواب کې ئې وایو چې هو کې دا کار ممکن دی ځکه د نفسیاتو ماهرانو د دې دپاره د علاج لار موندلې ده.

ویلیام جیمز د امریکا نومیالی روان شناس وائي: «چې د خپلو اعمالو په تغیر سره کولای شو چې احساساتو ته هم تغیر ورکړو.

کله چې ستاسو څخه خوشالي ولاړه شي او یوازې لار چې ستاسو وهغې خوا ته لارښوونه کړي هغه داده چې په ورین تندي داسې لکه چې هیڅ غم او خفګان نلري خوشاله کېنېنئ او د دنیا ټول غمونه هېر کړئ د پخوانیو ارمانجنو خاطرې یاد پخپلو دماغو او کې مه در ګرځوئ، او د راتلونکو ناوړو پېښو په شاوخوا کې فکر مه وهئ کوښښ وکړئ چې د حال په زمانه کې مو طبیعت خوشاله او زړه آرام وي.

## خوږې خبرې

### مور

هغه څوک چې ډېر و کوچنیانو ته او په لاس کې لري تر هغو چې د حکومت د چارو واګې ئې په لاس کې دي ډېرې مؤثرې د قدرتونکي دي. [اسمایلز]

** **

هر وخت چې مېندې فاسدې سي نسل هم فاسدېږي.

** **

په هر ځای کې ډېر و کې ښه او بد په مور پورې اړه لري.
[ناپلیون]

** **

هیڅ شی د خپل اولاد سره د یوې مور دایدلو په اندازه روح ته خوشاله کوي او هیڅ شی زموږ د احترام او تقدیس حس د هغې مور په اندازه چې ورو کې ئې پر شاوخوا راګرځېدلی وي نه بیداره کوي.
[ګوېته]

ښاغلی عبدالحی [حبیبی]

# د زړه ډیوه

توره شپه ده تور زنګل دی — پکښې ورک یم سرګردانه
نه څه وینم، نه پوهیږم — نه رڼا شته نښانه

ځم خو نه پوهیږم چیری؟
دا خبری را نه هیری

بصیرت می زایل شوی — روند و ګونګ یمه بې فکره
نه خبر یمه له ځانه — ورک ددې، هغه، له ذکره

مه شی ورك هسې نیاره کی
چې دی عقل وحس کار نه کی

داچې ګرزمه بې فکره — بې سنجشه ښوریدل دی
داچې ژوند کوم نیاروکی — نه ژوندون نه سوچ کول دی

زه یم مړ ځان ژوندی بولم
د ژوندون سندری بولم

په دې توره نیاره ورك وم — داسې ږغ راغی له ورایه
ځان نه بل د زړه څراغ کړه — ترڅو ویر کوی بې ځایه

په رڼائې ځه مقصد له
لاردی مومه عقل وسدله

دا ډیوه ده ډېره روڼه — رڼوی کلی کور واده
عقل وهوښ شی پهروښانه — ښه ځلانده شی په دواړه

دا څراغ بل که په کور کی
ددې مینی په هر لور کی

ښاغلی عبدالشکور [رشاد]

# د پردېسانو
## ږغ

اوربلو! د رومي د وطن خوانه — سلام مې وړوسی هغه اشنا ته
چې زړه ئې ډک دی زما له یاده — سترګې کږي دی زما وخوا ته

* * * *

که مینې مینې! د اشنا مینې! — وچې له نا شوې دزړونو وینې
لیمه شول سترګې له اشکباره — دا له ناوه سینې شوې خونبنې

* * * *

اوس به بهاروي به پښتونخوا کې — ګلان به ټوکي به شاوخوا کې
به مینه پراشه هغه شمله! — چې دې ژوندون شته به سره ساکې

* * * *

که ژوندی ژوندا! د مینې ژوندیه! — به غم دی د که دغم لمن ده
نامراده ژووم نامراد به ومرم — مانه‌مې نه شوه د وصال تنده

* * * *

اوس به مې ایښې به پیمانو کې — رندان به تول وی به میخانو کې
ساقي به وانې افسوس چې نشته — «رشاده» پردیس دی به وطنو کې

* * * *

ترباد دې جارشم ساقي دلشاده! — زړه مې آباد دی داستا له باده
جهان مې واړه نرتا ندری شه — چې هېر دې نه شي رشاد نامراده

ښاغلي سليمان [لايق]

[له کابل څخه]

# ورې قطرې

څه کوې داسره کوچنۍ ورېځه له آسمان سره ؟
څه غواړې دومبسکې «۱» له موجو او د توفان سره ؟

ولې دا مجبور بشر ناري د آزادۍ وهي
څه دي د لاس ماتي د مړوند له امتحان سره ؟

ته نه ! اې شاعره ! نه وهمونو غولولې يې
ګوره چې لاڅه کړې دا مجبور له اېن و آن سره

دا ماشوم دومبسکې په موجونو کې اسير نه دی
دا بحر کې ورېځه سېکه نه ده له آسمان سره

دې وروته ګوره په واره نظر و نه ګورې
مل که نې قطره نه وي نو څه دي له توفان سره ؟

داوړې قطرې به عالمونه لاندې باندې کړي
يو که شي له ميل و زمان او د مکان سره

مه اخله نظر ، بلند نظره ! له دې ټيټو نه
سېلک به دې شي وزن د جګوالي له مېلان سره

---

«۱» حباب .

# ستا د پاره

زه چې تل د ژوند ترخو غمونو ژړولی يم
زه چې ناکاميو ، بدبختيو کړولی يم

زه چې خپلو ميلو کباب کړی عذاب کړی يم
زه چې هر ظالم لکه يتيم غوندې وهلی يم

زه چې د هر مار او هر زهري خولې ته طعمه يمه
زه چې هر نامرد د جفا غشي ته نيولی يم

مرحوم ملا رحمت الله بابا

## پر ویل د رحمت الله به تصدیق وکړی

په کیمیا بدې عبث دی نجس
هم دغه دول غوښتنه د پـاروس

پر ځانو باندې پخپله شاهدان شی
د دنیا هیڅ نه وسپاری نفوس

نردې دوارو به راحت کې هغه بوله
چې خواره خوری داوریشی د سبوس

د هرچا خوږل چې قوت لایموت شی
و علاج نه محتاج نشی د بروس

محنت ښه دی مګر نه تر هغې حده
چې سودائی کړی به سر کې ماغزه بوس

په دنیا کې کفایت ښه وړه دی
د جنت دا استبرق دی او سندس

ولې نه موږ هغه فیضانی خاوره
چې پر کړی اهل د لوری جلوس

لاهغو ځایو څه پو هغه زندان دی
چې معصوم حضرت یوسف و پر محبوس

پرویل د «رحمت الله» به تصدیق وکړی
که ژواندی شی فردوسی شاعر د طوس

---

زه چې اـکه دروی دهر شپون ترجمانی کوم
زه چې هر محروم خپلو دردونه ژغولی یم

زه چې دقام فقر او نابوهۍ دسپیلنې به شان
هره ورځ به نیغنه د نورو نو اودولی یم

زه چې د ناوړه زمانې به هره لوبه کې
مل ځلی به مخ باندې اوېدلی درېدلی یم

ما داهملواړه ستا به مینه کې زغملی دی
ای ګرانه هیواده! ستا د پاره می منلی دی



ښاغلی [ مفتون ]

# شمع ويل

د زړه قرار به ميخانو کې نشته
د ژوند قرار به ترانو کې نشته

په ګډا ژړا کې شمع ويل:
چې سربازي په پروانو کې اشته

بها د اوښکو د مينو ستر ګو
ستا به بې شمارو خزانو کې نشته

تسبيح مې پورته کړی آواز وشوار
ته چه څه ګورې ديدانو کې نشته

يا زما مينه منطقي شوه جوړه
يا جوړه شوخي ستا بهانو کې نشته

کومه نشه چې د کوکوه غم کې ده
نشته د ميو پيمانو کې نشته

---

ښاغلی احمد ګل مومند

[لرغوني ادب]

## يوه ورځ به دا نيمګړی جهان وران سي

چې له کبره فروان د پښو پر نو کو
اوس ئې ګزخاوری پر ئې دی پرهمو کو

يوه ورځ به دا بلبل خاورو ته ورشي
داچې ئن اوبوی خيال د ګل پهڅو کو

عاقبت به دا نيمګړی جهان وران سی
ته دا ستا دی نه زما نه د ملوکو

يوه ورځ به دا نبور دخولې مړه شي
ظالمان چې سرې بو تې خوری په مشوکو

احمد ګلی غريب تر سپينی ږيری پوری
تمام عمر پر ځان تېر کړ د وروکو

ښاغلی [نجیب]

# د سانسکریت د ژبې لغات

## په پښتو، پارسي او عربي کې

د سانسکریت ژبه چې د آریائي ژبو مور گڼل کېږي ځینې لغات ئې لا تراوسه پورې په پښتو، پارسي او هم په اردو او هندي ژبو کې استعمالیږي او ځینې ئې په هند کې د عربو د نفوذ او اقتدار په زمانه کې عربي ژبې ته هم منتقل سوي دي که څه هم بدې لغاتو کې د زماني په مرور سره څه لفظي تغیرونه راغلي پسا اصلي کلمې بېله تحریفه څخه په معنی کې تغیر پیدا کړی وي خو په هر صورت سره دا تغیر جزئي او د څه اهمیت ور نه دی زه غواړم چې په لاندنیو کرښو کې د دې ژبې لغات چې تر یوې اندازې له یو ر تنیو ژبو سره لفظي یا معنوي اړ ډه لکت لري دلته راوړم.

۱- ستې: د لس زره لغات د کتاب لیکوالکي لیکي چې پښتانه ستې هغې ښځې ته وائي چې مېړه ونه کې او مجازاً د فداکار او عشق سوځل سوي په معنی سره هم استعمالیږي په بل ځای کې ئې دغه د ستې کلمه د شاهتري په معنی سره ضبطه کړېده، په معروفه [ی] سره ئې مطلق سوځته معنی ځنې اخستې ده په سانسکریت کې وهغې ښځې ته ستې وېل کېږي چې له مېړه سره یو ځای ځان په اور کې وسوځي.

۲- حرج: د حرج کلمه د [ر] په سکون او د [ح] په فتحه سره په عربي ژبه کې د سختوې گناه او سپمولو معنی ور کوي په سانسکریت کې په هم دغو حرکاتو او سکناتو سره د نقصان معنی لري.

۳- مخ: پـه سانسکریت کې مخ ته [مو کهٔ] وائي پـه پښتو کې ئې صرف [ك] پـه [خ] اړول کېږي اور نـو هم دغه کلمه د هم دغه یو مقصد دپاره استعمالیږي.

٤- ستان: د ستان کلمه چې په پارسي کې د اسم مکان له آدانو څخه ده په سانسکریت کې هم د مطلق ځای معنی ور کوي.

٥- دوار: د دوار کلمه چې په سانسکریت کې د دروازې معنی ور کوي په عربي کې د [و] د حذفیدو په شرط د خوني او کور معنی ور کوي په پښتو کې [ور] دروازه بولي د [د] او [ا] په اېسته کېدو سره ئې معنی یو شانته دهٔ.

٦- دوك: په پښتو کې د مصیبت غم او تکلیف معنی لري په سانسکریت کې کټ مټ پدغه معنی استعمالیږي.

٧- ادر: دا لغت په پښتو ژبه کې د ویرې او په سانسکریت کې د عزت په معنی سره استعمالیږي.

په پښتو کې ئې استعمال داسې دی مثلاً: کندهاریان په هغه وخت کې چې یو مهیب شی وویني نو وائي په خدای دې [ادر] مې ځینې وسو، مطلب *

-[ښاغلي ويران]-

# ښاغلی عبدالرحيم «هاتف»



ښاغلی عبدالرحيم «هاتف» د مولوي محمداويس «کاکړ» زوی د ملامحمدنور لمسی اود ملا دين محمد کړوسی په ختهمندوخيل کاکړ دی سن ئې د ۳۶ کالو؛ په ښه ښه شکل او نهايت خوش-اخلاقه، ذکي اود ښې حافظې خښتن دی، پيشه ئې اوس تجارت ده او په تجارتي امورو کې خلاف د خلکو لهعادت سره چې دډېرناوان سره مخامخ کېږي خورښتيا وائي، خطاايستل اوفريب عار بولي او هرڅه ئې بې جنجاله خونې دي چې پدې وجهد ډېرمحله دښهمعامله دار نوم ېې باديږي اوهم خلاف دنورو سوداګرو دژونده سره دتفريح وخت په تفريح د کوي د کار پروخت په کار لګياوي، د موسيقي سره هم علاقه ساني دخپلې کورنۍ او کشرا-نو دپاره پرسپره پردې چې مشرئې دی اودوديه غم ئې خوري پولائق معلم ئې هم دی. د ډېر ند کلوی نوره پرڅهئې چې ېخپله ددوی په قلم ده ليکو:-

ښاغلی هاتف پسله هغهچې خپل اود پلارو نيکه نوم په اود دول معرفي کوی داسې ېسې ليکې:-

[ د پلارو نيکه کسب مې تجارت دی خو نيرو نيکه کانومې څانوله پهمځکه مصروف ساتل پلار مې ترتجارت پخوا پهمعلمی لګياوو اودپښتو دنوی نهضت پهسلسله کې ئې په نظم اونثر هرڅه کړېده او د ليکوالو په صف کې دريږي، زما نيکهخپل د پښين د «ننګی» له کالی څخه کندهار ته راغلی دپلار دی دلې اسورې د

- دادی چې تخنی وپرپدم .

۸- بابو: ښتانه و سپين ږيری ته بابو وائی څينې خلک نيکه بابو بولي په سانسکريت کې وزميندار باپلارته بابو وائي پهعربي کې ابا يا دپښتو ژبي باباهم ورنږدې دی.

۹- هلك: په سانسکريت کې بالك وهلك ته ويل کېږي په پښتو کې ئې [ب] په [هـ] سره اړول سوی او [الف] ئې حذف سوېدی.

۱۰- بدهـ: پهسانسکريت کې دا کلمه د عقلمند او هوښيار دپاره ده په پښتو کې بو نافيه [نا] ورسره راغلې چې نابوده تخنی جوړيږي او د بېعقل او بې وقوف معنی لري مثلاً: داپلانی «نابوده» سړی دی. پرته لهدې په سانسکريت کې نورهم ډېرلغات شته چې ددنيا وډېرو ژبونه ورته دی خو دا ګړي مې داڅو لغات چې لوړ ذکر شول راوړل.

ارغنداو د «سرده» په کلي کې بیا په ښار کې
د ننه او سپین کوبازه بوي داسې اوسطي کورنۍ
ته منسوب یم چې د پوهنې او دودیه په لحاظ ډېر
وتلي دي او نه ډېر ټيټ خو د اخلاقو او معاشرت
په اعتبار ئې په شهرت ژبات دی .

زما مور د مرحوم رحمت الله بابا چې د کندهار د
معاصرو شعراؤ څخه ؤ لور او د مرحوم عبدالله
پوپلزي لمسۍ ده چې هغه نومړی د خپل عصر
په شاعرو او «محزون» تخلص ئې کاوه، د دغو
نومړو تر اشعارو د دوی د نفس کرامت ډېر د
ستاینې وړ دی تو که مبالغه روا وي باید ووایم
چې زه د شعرؤ ادب په غېږ کې روزل سوی یم
لیکن حقیقت دا دی چې د شعر او نفسي ادب په
لحاظ و خپلو اسلافو ته پوره نسبت نلرم .

زه د ۱۳۰۵ ش کال په سرطان کې د کندهار د
نورزو په کوڅه کې زیږېدلی یم د شپږو کالو
په سن کې ئې د «شالمار» ښوونځي ته چې اوس ئې
نوم په مشرقي ښوونځي اوښتی دی داخل کړم تر
لومړنیو تحصیلاتو وروسته د کابل د احضاریې د
مکتب ته وټاکل سوم چې د عمر د لږوالي په عذر
ئې بیا ترما لاس واخیست، وروسته د احمدشاه بابا
لیسې ته داخل سوم چې په هغه وخت کې متوسطه
مکتب ؤ او کله چې د لومړي ټولګي څخه بریالی
سوم زه سوز کرده ټولګیوال ئې د پوهنې د
وزارت په خوښه د بغرا پروژې ته چې تازه شروع
سوې وه ور کړه له دې ټلې څخه یو ؤ نیم د آل اندېښه
شاګردان په شخصي مصرف د عالي تحصیلاتو د پاره
کابل ته ولاړه چې ما هم صرف د تقلید په سائقه
دغه هوس وکړه په کابل کې د حبیبیې د لیسې د
شمول موقع را کړه سوه او په هغه کال چې په
زه د دوولسم صنف څخه راوتم د ادبیاتو فاکولته
د ښاغلي «حبیبي» تر ریاست لاندې جوړه سوه
او صمد ستي هوري شامل سوم که څه هم د ښوونځي
په وخت کې ما هیڅ ادبي ذوق نه درلود او هیڅ
خارجي مطالعه مې نه وه کړې چې په دغه نقیصه به
هغو شاګردانو چې ادبي مذاق ئې ښه ؤ کښېږلم
په هر صورت د قسمت لیکنې ته مې سر کښېښود
په ۱۳۲۸ کال کې د هغې فاکولټې څخه فارغ
سوم او په کندهار کې د میرویس په لیسه کې د
مرستیال په توګه مقرر سوم دوه کاله وروسته و
احمدشاه بابا لیسې ته ښوونکی مقرر سوم او د
۱۳۳۱ کال په تور کې د کابل دارالمعلمین ته
تبدیل سوم په ۱۳۳۲ کال د پوهنې د وزارت په
موافقه د هلمند او ارغنداو د ناوې د انکشاف ولوی
ریاست ته د تبلیغاتو د مدیریت په کفالت ورېدل
سوم صرف نه میاشتې مې هوري کار وکړ او د
شخصي معاذیرو په نسبت مې له هغه ځایه څخه
اجازه وغوښته او کله چې هغوی زما عذر معقول
وګاڼه اجازه ئې را کړه د ۱۳۳۴ ش کال را پدې
خوا په شخصي کارو، د کور په سرپرستۍ او تجارت
لګیا یم په ۱۳۴۰ کال کې د کندهار د اطاق
تجارت د مرستیال مقرر سوم چې د هغه کال د
بشپړ کېدو سره مې هغه کار هم بشپړ سو .

داوه زما د ژوند مختصر حالات خو په سوانح کې
زما په نظر تر سرګذشت شخصیت اهمیت لري چې
غواړم یو څو کرښې د نفس په معرفي کې هم ولیکم:
زه یو قانع، بې استقامته، عافیت پسنده، بېړوندو کې
شرمنده ګی، متحمل، او په محدوده ساحه کې

اجتماعي انسان یم، دوستان مې
له ځانه خوشال ساتلي دي د تکلف
او درواغو څخه مې د پر بد راځي
او رسمي ژوند را باندې دی
د رنیږي بخوامې د زده کړې
استعداد نه ؤ او س چې د ژوند
په کنډکرو اخته یم ځان نه را
معلومیږي، د لیك عشق نلرم
او د نو شتې ژ به مې ز څخه، در نه
او متکلفة د نظم و بلای سم
خو شعر مې کله نه دی کړی
خصوصي ذوق د علم الاجتماع
سره لرم ].

ښاغلی هاتف پرته د پښتو او
پارسي په انګلیسي، عربي او
اردو هم ښه پوهیږي لیك ؤ لوست
دواړه په کولای سی د دوی
مقالې د کندهار په طلوع-
افغان، کندهار مجله او
هلمند په جریده کی خپاره
سوي دي لاندې آثار او ترجمې
هم په دوی اړه لري.

۱- د حمید ماشوخیل احوال
او اشعار غیر مطبوع کتاب.

۲- ابن سینا بین الدین و الفلسفة
د عربي څخه په پارسي د پوهنې
وزارت کتابخانې ته ترجمه
سوي دي.

۳- تنقید شعر العجم د اردو څخه
په پارسي ترجمه سوي دي.

٤- اوس ئې یو کتاب تر کار
لاندې دی چې [ د روزنې د
نفسیاتو اساس ] نومیږي او د
انګلیسي څخه ئې پښتو ته
راړدوي.

دا ئې یو منظوم اثر دی:-

## ﴿ په لګو ستورو د لمر ځای نه ډکیږي ﴾

د ډیوو له نور کنډو سترګه نه امیږي
له ورو ستې نظرئې دغه معلومیږي

په حسرت ګوري و بیجاړو کنډوالو ته
بیا به دلته کښېږدي کله ولاړیږي؟

سل لاکه چې زر دي ومره یو دي همه مره
په لکو ستورو د لمر ځای نه ډکیږي

په یوه سترګه چې شاه ؤ ګدا وینی
تر هغه سترګه پر ځای عالم جاریږي

په ازل کې ئې د وصل کرښه نسته
بر څه لمر سپینی شپوږمې ته ایساریږي

دا ژیړ لمر نه دی دغره پر هسکه څوکه
محتضر دی وصیت ته تیاریږي

څو آخر غشی ئې نه وي ګزار کړی
تر هغو پورې مېړه نه تسلیمیږي

ملامت نه یم که شعر ګوډ-ؤ روند سو
بیا خبره بې ګډه نه ګډیږي

ښاغلی [رشاد]

# نواب محسن الملك
# یعقوب علي خان بامېزی

یعقوب علي خان بامېزی «۱» په خزانه عامره (۱۰٤ مخ) صولت افغاني (۲٤۹ مخ) سراج التواریخ (۲۲ مخ) او تاریخ هندوستان (نهم ټوك ۳۱۷ مخ) کې د احمدشاهي دورې د اشرف الوزراء شاه ولیخان بامېزی ورور بلل شوېدی او زما په خیال ددوو وروستیو مؤلفانو مأخذ د آزاد بلګرامي خزانه عامره ده چې په ۱۱۷٦ هق کال بشپړه شوېده ښاغلي عزیزالدین پوپلزي هم په تیمورشاه دراني (۲۵۰ مخ) او درة الزمان (۲۲۹ مخ) کې ددوی ورور بلله نللی دی.

مګر په قلمي تاریخ حسین شاهي (د ۱۲۱۳ هق کال تالیف) دولت درانیه (۳۱ مخ) ګلستان رحمت (۱۰٤ مخ) حیات حافظ رحمت خان (۷۹ مخ) تاریخ سلطاني ۱۳۷ مخ او AHMAD-SHAH DORRANI په (۱۵۵ مخ) کې د اشرف-الوزرا ترېور او همقومه بلل شوېدی د شاه عالم نامې مؤلف غلام علي خان چې د یعقوب علي خان معاصر دی د شاه عالم نامې په (۱۷۰ مخ) کې لیکلي دي چې د شاه ولیخان او یعقوب علي خان ترمنځ د دوستۍ او قرابت رګې ؤ د اشرف الوزرا او یعقوب علي خان ترمنځ د صرف همقومۍ نور مؤیدات هم شته مثلاً په احمدشاه دراني (۱۵۵ ـ ۲۳۲ مخونو) کې زیاته سوېده چې یعقوب علي خان په هندوستان کې له ډېره وخته مېشت ؤ او د یو اعزازي شپږ زري منصبدار حیثیت ئې درلود په حیات حافظ رحمت خان (۸۹ مخ) کې ئې د استوګنې ځای (روهیلکنډ) ضبط دی او په تاریخ حسین شاهي کې چې مؤلف ئې د یعقوب علي خان معاصر او د (روهیلکنډ) د ښار خوا او سېدونکی دی واضحه شوېده چې یعقوب علیخان له ځوریښته څخه په شاهجهان پور کې اوسېدی شاهجهان پور د بلي ختیځ اوړ ته یو نیم سل میله لیرې د ګنګا پر غاړه واقع دی د دولت درانیه (۳۱ مخ) کې کټ مټ د دغو کلماتو ترجمه په اردو ژبه لیکلې ده او په تاریخ سلطاني (۱۳۷ مخ) کې هم کټ مټ دغه ذکر شته یعنې سلطان محمد خان بارکزی هم یعقوب علیخان د شاهجهان پور اوسېدونکی بللی دی د یعقوب علیخان بامېزی لقب په دولت درانیه (۳۱ مخ) او حسین شاهي کې نواب محسن الملك (۲) او په شاه عالم نامه (۱۷۰ مخ) کې معتمد الدوله ضبط دی د یعقوب علي خان نوم د رومبي ځل لپاره د (۱۱۷۰ هق) کال په واقعاتو کې لیدل کېږي کومه چې د احمدشاه دراني په (۱۵۵ مخ) کې لیکلي دي.

«۱» په خزانة الاعارة او د هندوستان په نهم ټوك کې بهمن زی کښلي دي د تامل وړ ده.

«۲» د احمدشاه بابا په ۲٦۰ مخ کې چې محسن الملك او یعقوب علي خان دوه بېل سړي بلل شوېدي د تامل وړ ده.

د (۱۱۷۰هق) کال د اوړي خوږ په پای کې چې د لوی احمدشاه بابا فرجونه له لاهوره څخه مخ پر ډیلي ووتل نو عماد الملک غازي الدین د ډیلي وزیر چې په ځان کې د جنګ وس نه لیدی وارخطا شو او نجیب الدوله چې ئې هم له مرستې څخه ټینګ کړاه او ئې مجبوراً له احمدشاه بابا سره پټه سیاسي مفاهمه لاس پوری کړه او ددې غرض له پاره ئې د دوهمې خور په شپږمه ورځ (۲۹ د دسمبر ۱۷۵۶ع) یعقوب علیخان د ډیلي پاچا دوهم عالمګیر (۱۱۶۷-۱۱۷۳ هق) ته وروست پدې بار بابی کې یو مشهور فقیر (شاه فنا) هم ورسره مل کړه شوی و ددغو دوو کسانو په خوله لوی احمد-شاه بابا ته د دوهم عالمګیر له خوا «۱» دا پیغام ورواستول شو (که ته د ډیلي له راتګه صرف نظر وکړې او بیرته وخپل وطن ته ستون شې ستا د لښکر د مصارفو لپاره به یو اندازه روپۍ او زوی ته به دی د دوهم عالمګیر پاچا لور درکړاه شي «۲» یعقوب علیخان د لوی احمد-شاه بابا حضور ته د ډیلي د دربار دوزیر په امر د دوهم عالمګیرا جملې پیغام ورساوه د دوهمې خور په شپږو یشتمه ورځ (۸ د جنوری ۱۷۵۷ع) چې لوی احمد شاه بابا پخپله خو میله د (بادلی) شمال ته د (سونی پت) نومی ځای «۳» په شاو خوا کی اړولی و له دغه ځایه څخه ئې د ډیلي دوزیر غازي الدین استاځی یعقوب علیخان او اغارضا «۴» د ډیلي لورته رخصت کړل او د دوی په لاس ئې دا پیغام ورولیږه: (زه د ډیلي د پاچا دوهم عالمګیر او وزیر غازالدین د لیدلو له پاره شخصاً ډیلي ته درځم بیا هم له هغه به د صلحې د شرطونو په باب کی سره وزغیږو) «۵» د (۱۱۷۰ هق) کال د دریمې خور په اوومه (ورځ ۲۸ د جنوری ۱۷۵۷ع) لوی احمدشاه بابا د ډیلي ښارته ورننووت هلته د لوی احمد شاه بابا داوسیدلو په موده کې یعقوب علیخان د (روهیلکهند) د نواب واکمن حافظ رحمت خان پر بخی له خوا د سفیر په توګه د لوی احمدشاه بابا حضور ته واستاوه شو د شاه ولیخان په ذریعه نوموړی د لوی احمدشاه بابا په حضور مشرف او د حافظ رحمت خان د اطاعت پیغام او سوغاتونه ئې د پاچا حضور ته ورانډې کړل «۶» ترڅو چې لوی احمدشاه بابا په هندوستان کې و یعقوب علیخان د حافظ رحمت خان د سفیر او

---

«۱» دوهم عالمګیر لوی احمد-شاه بابا ته خطونه لیږلی وو چې ما د هندو پروره وزیر غازي الدین له لاسه خلاص کړه زه د ده په لاس کې بندي یم (وګوری د احمدشاه درانی (۱۵۰مخ) او دروهیله پښتانه ۲۹۵مخ) دلته ئې فقط دخپل وزیر د ډیر ایستلو له پاره مجبوراً د دغه پیغام لیږل منلی دی.

«۲» تاریخ عالمګیر ثانی (۳۶ B-A) مخونه.

«۳» سونی پت له ډیلي څخه شل کروه لیری دی.

«۴» اغارضا یو چلاثر یعقوب علیخان د مخه د ډیلي د وزیر له خوا د لوی احمدشاه بابا حضور ته د استاځی په حیث لیږل شوی و دا ئې دوهم بلاور تګ او رخصتیدل و.

«۵» د احمدشاه درانی ۱۵۹ مخ (د تاریخ عالمګیر ثانی د ۹۲مخ په حواله).

«۶» حیات حافظ رحمت خان ۸۹ مخ، دولت درانیه ۳۱مخ حسین شاهی تاریخ.

وکیل په حیث په احمدشاهي کمپ کې حاضر شو د (۱۱۷۰هق) کال د رجب په شپاړسمه ورځ (۶ د اپریل ۱۷۵۷ع) چې لوی احمدشاه بابا له ډيلي څخه مخ پر کندهار لېږدېده څو ورځې پخوا ئې یعقوب علیخان حضور ته وروغوښت ده په لاس ئې حافظ رحمت بریڅې ته د خپل رضائیت پیغام ورولېږه او (روهیلکهنډ) ته ئې رخصت کړ «۱» د حافظ رحمت خان زوی مستجاب خان پخپل اثر ګلستان رحمت کې داهم زیاته کړې ده چې لوی احمدشاه بابا حافظ رحمت خان ته داهم لیکلي وو چې د جنګباز خان مرسته وکړي «۲» جنګباز خان د (۱۱۷۰هق) کال د څلرمې خور په ۲۷ ورځ (۱۹ د مارچ ۱۷۵۷ع) د درو زرو سپرو سره د نواب احمدخان په ملګري او ملاتړ د بنګال د نیولو لپاره ګمارل شوی ؤ.

د (۱۱۷۳هق) کال د څلرمې خور په دوهمه یا دریمه ورځ (۲۱ د جنوری ۱۷۶۰ع) چې لوی احمدشاه بابا دوهم پلا ډيلي له مرهټو څخه ونیو او څو ورځې وروسته ئې د سورج مل چاټ د ځپلو په نیامت د بهرتپور او دیګ اورنه ئې ټکر وخوځاوه له ډيلي څخه تر وتلو پخوا ئې د ډيلي د ښار حکومت او ساتنه یعقوب علیخان ته وسپارله «۳» او دوه زره عسکر ئې ورسره پرېښوول «۴» د لوی احمدشاه بابا فوجونه چې په کول (اوسني علي ګړه) او چالیسر کې د جاټانو په ځپلو اخته ؤ په دغه وخت کې (د ۱۱۷۳هق) کال د میاني په وروستي ورځ = د ۱۷۶۰ د جولائی ۱۴) د مرهټو هغه درونداټکر چې د بیشوا د زوی بسواس راو او سداشیو بهاو په مشرتوب د لوی احمدشاه بابا مقابلې ته له دکنه رالېږل شوی ؤ له چمبل سیند څخه شل میله شمالي اورنه را ورسید سورج مل جاټ او ملهار راو هولکر ئې هم له خپلو فوجونو سره مله شوي ؤ له دغه ځایه څخه د سداشیو بهاو په حکم چې د ټولو مرهټه فوجو سپه سالار ؤ یو ټکره فوج د ملهار او هولکر جنکوجي او بلونت ګینش مهندال تر مشرتابه لاندې د ډيلي د نیولو لپاره مخ پر ډيلي وخوځید.

ناسپاله غازي الدین او سورج مل چاټ د دې ټکره فوج سره د لار ښودونکو په حیث ملګري کړه شوي وو «۵» دا فوج د (۱۱۷۳هق) کال د لوی اختر د میاشتې پر اتمه «۶» یا په نهمه «۷» ورځ د ډيلي نه ورسید او په حویلي سعدالله خان کې ئې واړول. د ډيلي د احمدشاهي نائب الحکومه نواب محسن الملك یعقوب علیخان بامیزی سره د دې چې ده ئې جنګي میړونه د دغه مهاجم فوج شلمه برخه کیدله او ده ئې جنګي اسباب د مرهټو له جنګي اسبابو نو سره سیالي کولای شوه خو بیائې هم د پښتني غیرت په حکم مقابله وکړه او نښته ئې دمه له «۴» مګر څه ګټوره نتیجه ور نه کړه او د ډيلي ښار ئې تر دېره وخته

---

«۱» حیات حافظ رحمت خان (۷۹ مخ).

«۲» ګلستان رحمت ۱۰۴-۱۰۵ مخونه.

«۳» دولت درانیه ۳۱ مخ احمد شاه درانی ۲۳۲ مخ.

«۴» احمدشاه بابا ۲۶۰ مخ.

«۵» شاه عالم نامه ۷۱ مخ.

«۶» د احمدشاه درانی ۲۵۴ مخ

«۷» تاریخ هندوستان ۹-۱۰ ټوك ۲۰۵ مخ د علیګړه چاپ.

«۸» دولت درانیه ۳۱ مخ.

بیرته د مرهټو له مجرومه خلاص او نه ساتلای شو او دغو ورځو غرمی ته (۲۲ د جولای) د ډیلی ښار د مرهټو په لاس کښېووت بشپړه یعقوب علیخان په لال کلا کی چی د ډیلی د ښار حکومتی کلا وه کلا بند شو. «۱»

د احمد شاه درانی د کتاب «۲» له مخی ئې لس ورځی او د شاه عالم نامی «۳» له مخی ئې شل ورځی کلا بندی سوکالله او د لوی احمد شاه بابا حضور ته ئې خپل حال ور و لیږه. «۴»

غلام علی خان د شاه عالم نامی مؤلف لیکلی دی چی د دغی کلا بندی په موده کی یو ورځ دریو مرهټه سپاهیان د جمنا د سیند له خوا څخه د کمند په وسیله برج ته ور پورته شول او په لال کلا ور ننوتل د یعقوب علیخان سپاهیانو هغه دری سره ننه مرهټه سپاهیان چی د اتهول راو د یه شری نور ختلی و او ور وژل او نور مرهټه سپاهیان چی برج ته د ور ختلو په هیله تر کلا لاندی ولاړ و تیت و تیتبدل «۵» د جنکو رراو او هولکر فوج د خضری دروازی د ماتولو زیار یوست مگر له کلا څخه د یښتنو د کولیو د لاسه کامیاب نه شول بیا ابراهیم گاردی دوی ته دری توپونه کښېښول او د ژ لیو په ختیرو ئې کولی پر لال کلا واورولی رنگ محل، مونی محل او دیوان خاص ته ئې د پرز باونه ورسول هره ورځ به یدي توگه جنګ تود و. «۶»

د دولت درانیه په ۳۱ مخ کی لیکلی دی لوی احمد شاه بابا ته چی د یعقوب علیخان د کلا بندی حال ور سید ده یرو باره ویوست چی په مرسته ئې فواج ور و لیږی مگر د جمنا طغیانی حالت او د برسات باران لار نه ور کوله حکه ئې نو یعقوب علیخان ته وایکل چی که مرهټه په سمه توگه د راو نلو لار در اکړی نه په وی ولی چی د دغه وخت د مصلحت دا اقتضا ده چی روغه و کړی او د ډیلی کلا مرهټو ته وسپاری «۷» یعقوب علیخان هم پدغه شرط روغه و کړه او د جمنا د سیند له لاری څخه ئې په بیړیو کی خپل تن او ملگری او جنگی سامانونه روغ رمټ راوا ایستل او د لوی احمد شاه بابا د کمپ خوا ته روان شو «۸» او بدي توگه د ډیلی لال کلاد (۱۱۷۳ هق) کال لوی اختر د میاشتی په نولسمه ورځ ( ۲ د اگست ۱۷۶۰ ع ) مرهټو ته ور خوشی شوله (۹) په کوم وخت کی چی د سدا شو بهاو فوجونه د لوی احمد شاه بابا مقابلی ته د پانی پت په لوری کی د لوی جنگ لپاره برا ته و و د مرهټو پیشوا (نانا بالاجی راو) د نربدا د سیند پر غاړه د یو لوی لښکر سره د قرت الظهر په حیث ور ته پروت و او په پانی پت کی د مرهټو فوجونو د کلا بندی په بد ورځ چی پیشوا و اور یدو د

---

«۱» احمد شاه درانی ۲۴۵ مخ.

«۲» احمد شاه درانی ۲۴۵ مخ.

«۳» شاه عالم نامه ۱۷۱ مخ.

«۴» لوی احمد شاه بابا پدغه وخت کی په انوپ شهر کی اردو لی و او رهلته ئې د ۱۱۷۳ هق د میاشتی څخه د ۱۱۷۴ د صفری تر شلمی پوری د برسات موسم تیر کړ.

«۵» شاه عالم نامه ۱۷۱ مخ، صولت افغانی ۲۴۹ مخ.

«۶» صولت افغانی ۲۴۹-۲۵۰ مخونه.

«۷» دولت درانیه ۳۱ مخ شاه-عالم نامه ۱۷۲ مخ احمد شاه درانی ۲۴۵ مخ.

«۸» شاه عالم نامه ۱۷۲ مخ.

«۹» احمد شاه بابا درانی ۲۴۶ مخ سراج التواریخ ۲۲ مخ.

تر بدا له هغه ځینې ځخه مخ پر ډېلي
را وخوځېد د ۱۱۷٤ هـ ق کال د
شلرمی خور په شپږمه وورځ (۱٤
د جنوری ۱۷٦۱) چې په پاني پت
کې مرهټو ماتې وکړه او پر
۲۸ زروتنو باندې ئې هیئندې
بوري شولي او لوی احمدشاه بابا
چې تر سو بې څوورځې وروسته
ډېلي ته راورسید په دغو وختو
کې پیشوا نانا بالاجي راو له
خپلو فوجونو سره د ګوالیار په
ښار ځوا کې ادولي ؤ او د پاني
پت له میدان بیا ډېلي ځخه په
تیښته تللي ؤ هلته نور مرهټه
سرداران لکه ملهار راو-
هولکر او د ډېلي مرهټه حاکم
پنډت ناروشنکر او نور پر را
ټول شوی وو .

څو ورځې پس د مرهټو یو
نماینده چې ( بابوجي مهاد یو
هنیګوني ) نومېد د پیشوا او لوی
احمدشاه بابا تر منځ د مفاهمې
لپاره زیار شروع کړ د احمد
شاه بابا له حضوره ځخه یعقوب
علي خان وګماره شو چې د یوه
پاچاهي امتاځی په حیث ګوا
لیار ته ولاړ شي او د پیشوا سره
د روغې نقشه جوړه کا ادی .
یعقوب علیخان ګوالیار ته ولاړ
مګر ځکه چې پیشوا پخپله
تاروغه پروت ؤ او نورو مرهټه
سردارانو له احمدشاه بابا سره
د لیدلو جرأت نشو کولای نو دغه
روغه وځنډېده «۱» او یعقوب
علیخان د لوی احمدشاه بابا
حضور ته راستون شو د (۱۱۷٤
هـ ق) کال د برات په دېرلسمه
ورځ (۲۰ د مارچ ۱۷٦۱ ع) چې
لوی احمدشاه بابا له ډېلي ځخه
کندهار ته ستنېدې یعقوب علیخان
ئې وګماره چې د مرهټو د نماینده
(بابوجي مهاد یو هنیګوني)
سره د پاچاهي سفیر په حیث د
پیشوا پایتخت پونې ته ولاړ شي
او هلته له پیشوا سره د روغې په
باب وزغیږي. «۲»

په (۱۱۷۵ هـ ق) کال کې چې لوی
احمدشاه بابا شپږمه پلا هندو-
ستان ته ولاړ او په لاهور کې
میشت ؤ تر خپل ننګ پخواني
نجیب الدوله او د ډېلي د دربار
نور لوی افسران خپل حضور ته
ورغوښتل نواب یعقوب علیخان
هم په دغه ډله کې د (۱۱۷۵ هـ ق)
د صفري په میاشت کې له ډېلي
ځخه لاهور ته ورغی او د لوی
احمدشاه بابا په حضور مشرف شو
او لوی احمدشاه بابا چې د ډېلي
امیران رخصت کړل دی هم
ډېلي ته ولاړ او له نجیب الدوله
سره ئې کار کاوه په (۱۱۷۸ هـ ق)
کال چې د بهرتپور راجا سو-
رجمل جاټ د میوات د بلوڅو
ځخه څو کلاوې ونیولې او چا
څوورته وته ویل نو ئې د ډېلي
دربار ته لاس پسې راواوږد کړ او له
نجیب الدوله یوسفزي ځخه ئې
(چې له ۱۱۷۳ هـ ق کال راهیسې
ئې د ډېلي د پاچهي ټول کارونه
اجرا کول) د فوجداري غوښتنه
وکړه له نجیب الدوله د مفاهمې
لپاره یعقوب علیخان د ډېلي د دربار
د استازي په حیث ورولېږه او
څه سوغاتونه ئې هم د سورجمل
لپاره ور کړه چې په هغو کې یو
تان چیټ هم ؤ .

د تاریخ هندوستان د اهم ټوك
په ۳۱۷ مخ کې لیکلي دي یعقوب
علیخان چې له سورجمل سره
لومړی ځل ولیدل او د نجیب-
الدوله سوغاتونه ئې ورته
کښېښودل د ده چې سترګې د چیټ
پر تان باندې ولګېدې خوښ ئې
شو د ستر ئې خیاط راوغوښت او
د ځان لپاره ئې له هغه چیټه ځخه
د کالو جوړولو فرمائش ور کړ
او بیا ئې خبرونې ځان دومره

---

«۱» احمدشاه درانی ۲٦۱-۲٦۲ مخونه .

«۲» احمدشاه درانی ۲٦۳ مخ

مشغول کړ چې یعقوب علي خان
سفیر ته ئې نوره توجه ونه کړه
یعقوب علیخان راولاړ شو او سور-
جمل ته ئې وویل ( نواب صاحب دغه
فرمائش بو خت ئې زه به بیا ستا
دفراغت په وخت کې راشم ) سور
جمل جواب ور کړ ( نواب صاحب!
که د روغې لپاره راځې خو مه
راځه ) یعقوب علي خان تر دي
جواب : روسته د ډیلي ته راستون
شو ددغه کال پای ته یعنې څه
وخت پس چې د ډیلي نه ئږدی
سورجمل جاټ د سید محمد خان
بلوڅ له لاسه ووژل شو اولاني
ئې نجیب الدوله ته ښکاره شو
یعقوب علیخان هم حاضر و . د سور
جمل جاټ د لاس ناسور اود هغه
چیټ لسونی ئې وپیژاند او

نجیب الدوله ته ئې د سورجمل
د مرگ داډور کړ . «۱»

په ۱۱۸۱ هق کال کې چې لوی
احمد شاه بابا اتمه پلا هندوستان
ته ورغی او په اسماعیل آباد کې
ئې چې دانبالې جنوبي لورته شل
میله لیرې واقع دی واړول نواب
یعقوب علیخان د نجیب الدوله د
وکیل په حیث داوی احمد شاه
په حضور مشرف شو . «۲»

تر ۱۱۸۱ هق کال وروسته د نواب
محسن الملك معتمد الدوله
یعقوب علیخان بامیزی ذکر کوم
ځای ته دی لیدل شوی البته په
۱۲۰۲ هق کال د دیلي د پاچا شاه
عالم مغل (۱۱۷۳-۱۲۲۱ هق) د
ړندولو په واقعه کې د یوه یعقوب
علیخان ذکر سته چې د نجیب-

الدوله یوسفزی دلمسي او ضابطه
خان یوسفزی د زوی غلام قادر
روهیله له خوا وژل شوی دی «۳»
مگر دا محققه نده چې دغه یعقوب
علیخان دی نواب محسن الملك معتمد الدو-
له یعقوب علیخان بامیزی وی او هم د
رامپور د نواب غلام محمد خان
مایمنه چې د یعقوب علیخان لور
ښودل شوې ده «٤» معلومه نده
چې ددغه نواب محسن الملك
یعقوب علیخان اور وه او که د نواب
غلام محمد خان دا کا یعقوب علیخان
اورده [؟]

«۱» صولت افغانی ۲۵۷ مخ د
مخزن التواریخ په حواله تاریخ
هندوستان نهم توك ۳۷۱ مخ .
«۲» احمد شاه درانی ۳۱٦ مخ .
«۳» تاریخ هندوستان نهم توك
۳٤۱ مخ .
«٤» اخبار الضاد یدوهم توك .

«د درهم مخ پاته برخه»

اخلاقي فضیلت منځ ته راتلای سي او ټولنیز اجتماعی عدالت عرض اندام کولای سي . کله چې د اقتصادی مساوات مزی د ټولنې دافرادو په منځ کې ټینګ سي هلته بیا ژر د انسانی اخلاقو مظاهر ښکاره کیږی او د اجتماعی عدالت فرشته

پر جهان خپل ښایسته وزرونه غوړوی ، یدې شرط چې پیامم افکار او عقول دواقعیت بیني په جهان کې سیر وکی او د تصوراتو له آسمانه را کښته سي .

داوه دسعادت په باره کې زما لنډه نظریه .

ام ، کرزی

